

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




# پښتو

## لومړی ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.



## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لومړی

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست

# فهرست





# د چمتووالي دوره

**موخه**: زده کوونکي به د دغو انځورونو په لیدلو سره خپل مسؤولیتونه وپېژني.











**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟

ـ ځوک به ووایي چې هر سهار خپله د خوب بستره په خپله ټولوي؟







## پوښتنې

ـ څوك به ووايي چې په پورتنيو انځورونو کې څه ويني؟

ـ څوك به ووايي چې له تاسو سره ښوونځي ته د تللو په وخت کې د تيارۍ لپاره څوك مرسته کوي؟







## پوښتنې

ـ څوك به ووايي چې په پورتنيو انځورونو کې څه ويني؟

ـ تاسو له سرك څخه په څه ډول تېرېږئ؟

ـ څوك به ووايي چې د پولو په سر تېرېدل څه ګټه لري؟







## پوښتني

ـ ځوک به ووايي چې په پورتنيو انځورونو کې يې کوم يو خوښېږي؟

ـ که وغواړئ ښوونکي ته ځواب ورکړئ، کوم آداب بايد په پام کې ونيسئ؟

# الفبا او انځورونه

موخه: د انځوريزې الفبا تكرار.



ا (انار)



آ (آس)



ب (بيل)



پ (پل)



ت (توت)



ټ (ټال)



ث (ثور)



ج (جوار)



چ (چمن)



## پوښتنې

ـ څوك به ووايي چې په پورته عكسونو او انځورونو كې څه شى وينئ؟
ـ څوك به ووايي چې په خپل كلي كې يې له پورته عكسونو او انځورونو څخه كوم شيان ليدلي دي؟

## مشق او تمرين:

ا ا ا ا



ح (حج)



خ (خرما)



څ (څاه)



ځ (ځاله)



د (درمل)



ډ (ډاکټر)



ذ (ذاکر)



ر (رمه)



ړ (ړوند)



## پوښتنې

ـ څوک به ووایي چې په پورته عکسونو او انځورونو کې څه وینئ؟

ـ څوک به ووایي چې په خپل کلي کې یې له پورته عکسونو او انځورونو څخه کوم شیان لیدلي دي؟

## مشق او تمرین:

آ　　آ　　آ　　آ





ز (زمری)



ژ (ژمی)



ږ (ږلۍ)



س (سابه)



ش (شال)



ښ (ښارو)



ص (صابون)



ض (ضعیف)



ط (طوطي)



## پوښتنې

ـ تاسو په پورتنیو انځورونو او عکسونو کې څه وینئ؟

ـ په پورته انځورونو کې موکوم یو خوښېږي؟

## مشق او تمرین:

ب ب ب ب



ظ (ظاهره)



ع (عینکې)



غ (غاښونه)



ف (فیل)



ق (قلم)




ک (کتاب)



ګ (ګل)



ل (لړم)



م (مور)



## پوښتنې

ـ څوک به ووايي چې په پورتنيو عکسونو او انځورونو کې يې کوم يو ليدلی دی؟

ـ څوک به ووايي چې د خپلو لاسونو د پرېي مينځلو لپاره له څه شي څخه کار اخلي؟

## مشق او تمرین:



ن (ناک)



ڼ (مڼه)



و (ونه)



ه (اره)



هـ (هګۍ)



ی (منګی)



ي (مڼې)



ي (موچي)



ۍ (سپوږمۍ)



ئ (ولولئ)



## پوښتني

ـ تاسو کله مڼه یا ناك خوړلی دی؟

ـ تاسو کله په جوماتکې له چا سره په ګډه قرآن کریم لوستلی دی؟

## مشق او تمرین:

> > > >

# الفبې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ا | آ | ب | پ | ت | ټ |
| ث | ج | چ | ح | خ | څ |
| ځ | د | ډ | ذ | ر | ړ |
| ز | ژ | ږ | س | ش | ښ |
| ص | ض | ط | ظ | ع | غ |
| ف | ق | ک | گ | ل | م |
| ن | ڼ | و | ه | هـ | ی |
| ې | ي | ۍ | ئ | | |

لومړی لوست:

موخه: زده کوونکي به د لاندې تورو غږ سم اداکړي، پوره او نیمه شکل به یې وپېژني، سم به یې ولولي او وبه یې لیکي.

| ا | آ | ب | پ | ت | ټ | ث |
|---|---|---|---|---|---|---|

ا ا ا ا ا ا ا

آ آ آ آ آ آ آ

ب ب ب ب بـ بـ بـ

پ پ پ پ پـ پـ پـ

ت ت ت ت تـ تـ تـ

ټ ټ ټ ټ ټـ ټـ ټـ

ث ث ث ث ثـ ثـ ثـ

ثب ثا اث بپ آپ تث اټ

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې توري ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې توري ولولي او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ دوه دوه زده کوونکي دې توري د کتاب له مخې له یو بل سره ولولي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (ا) توری څو وارې د تختې پر مخ ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د (ا) شکل څو وارې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د (ب او بـ) شکل څو وارې ولیکي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پورتنیو تورو پوره او نیمه شکل په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دويم لوست:

موخه: زده کوونکي به د (ج) او نورو هم شکلو تورو غږ سم ادا کړي، پوره او نيمه شکل به يې وپېژني، سم به يې ولولي او وبه يې ليکي.

| ج | چ | ح | خ | څ | ځ |
|---|---|---|---|---|---|

ج ج ج ج جـ جـ جـ

چ چ چ چ چـ چـ چـ

ح ح ح ح حـ حـ حـ

خ خ خ خ خـ خـ خـ

ج ج ج ج جـ جـ جـ

څ څ څ څ څـ څـ څـ

جح حج چخ حځ څح جچ

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې توري د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او یو یو توری دې پر تختې ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (ج) توری څو وارې د تختې پر مخ ولیکي.

ـزده کوونکي دې د (جـ) نیمه شکل څو وارې تمرین کړي.

ـ زده کوونکي دې د (ج ـ ځ) تورو توپیر په شکل کې وښیي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پورتنیو تورو پوره او نیمه شکل په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دریم لوست:

موخه: زده کوونکي به د لاندې تورو غږ سم ادا کړي، پوره او نیمه شکل به یې وپېژني، سم به یې ولولي او وبه یې لیکي.

| ږ | ژ | ز | ړ | ر | ذ | ډ | د |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

د د د د د د د د

ډ ډ ډ ډ ډ ډ ډ ډ

ذ ذ ذ ذ ذ ذ ذ ذ

ر ر ر ر ر ر ر ر

ړ ړ ړ ړ ړ ړ ړ ړ

ز ز ز ز ز ز ز ز

ژ ژ ژ ژ ژ ژ ژ ژ

ږ ږ ږ ږ ږ ږ ږ ږ

رز رژ ږژ رډ ږر رذ ژډ



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې توري د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ يو يو زده کوونکی دې توري د کتاب له مخې ولولي او بيا دې هغه توري پر تختې وليکي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې په وار سره يو يو توری پر تختې وليکي او د هم شکلو تورو توپير دې له يو بل سره وښيي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پورتني توري په خپلو کتابچو کې وليکي.

خلورم لوست:

موخه: زده کوونکي به د لاندې تورو غږ سم ادا کړي، پوره او نیمه بڼه به یې وپېژني، سم به یې ولولي او وبه یې لیکي.

| س | ش | ښ | ص | ض | ط | ظ | ع | غ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

س س س س س س سـ سـ سـ

ش ش ش ش ش ش شـ شـ شـ

ښ ښ ښ ښ ښ ښ ښـ ښـ ښـ

ص ص ص ص ص ص صـ صـ صـ

ض ض ض ض ض ض ضـ ضـ ضـ

ط ط ط ط ط ط ط ط ط

ظ ظ ظ ظ ظ ظ ظ ظ ظ

ع ع ع ع ع ع عـ عـ عـ

غ غ غ غ غ غ غـ غـ غـ

سط سغ طع غش شظ ضظ ضنط شص

## فعالیتونه

ـ یو زده کوونکی دې توري د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو یو زده کوونکی دې توري ولولي او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او بیا دې یو یو توری پر تختې ولیکي.

### مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د پورتنیو تورو شکلونه څو وارې پر تختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د هر توري نیمه شکل څو وارې پر تختې ولیکي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پورتنیو تورو نیمه او پوره شکل څو وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځم لوست:

موخه: زده کوونکي به د لاندې تورو غږ سم ادا کړي، پوره او نیمه بڼه به یې وپېژني، سم به یې ولولي او وبه یې لیکي.

| و | ڼ | ن | م | ل | گ | ک | ق | ف |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ف ف ف ف ف ف فـ فـ فـ

ق ق ق ق ق ق قـ قـ قـ

ک ک ک ک ک ک کـ کـ کـ

گ گ گ گ گ گ گ گ گ

ل ل ل ل ل ل لـ لـ لـ

م م م م م م مـ مـ مـ

ن ن ن ن ن ن نـ نـ نـ

ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ ڼـ ڼـ ڼـ

و و و و و و و و و

فل گک فم ون ول مف قم قن

## فعالیتونه

ـ یو یو زده کوونکی دې توري د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري د کتاب له مخې ولولي او بیا دې هر یو زده کوونکی یو یو توری پر تختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره پر تختې لیکل شوي توري ټولګیوالوته ولولي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د پورتنیو تورو پوره شکلونه څو وارې پر تختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د تورو نیمه شکلونه څو وارې پر تختې ولیکي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پورتنیو تورو پوره او نیمه شکلونه څو وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

شپږم لوست:

موخه: زده کوونکي به د لاندې تورو غږ سم ادا کړي، پوره او نيمه شکل به يې وپېژني، سم به يې ولولي او وبه يې ليکي.

| هـ | ه | ى | ي | ې | ۍ | ئ |
|---|---|---|---|---|---|---|

هـ هـ هـ هـ هـ هـ هـ

ه ه ه ه ه ه ه

ى ى ى ى ى ى ى

ې ې ې ې ېـ ېـ ېـ

ي ي ي ي يـ يـ يـ

ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ

ئ ئ ئ ئ ئ ئ ئ

هى هه هى يى هې هي

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې (ی) ګانې پر تختې وليکي او توپير ته دې پاملرنه وکړي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې د پورتنيو تورو پوره شکلونه څو وارې پر تختې وليکي.

ـ زده کوونکي دې د (هـ) دواړه شکلونه (هـ - ه) څو وارې پر تختې وليکي.

ـ زده کوونکي دې د (ی) نيمه او پوره شکل څو وارې په خپلو کتابچو کې وليکي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پورتنيو تورو پوره او نيمه شکلونه څو وارې په خپلو کتابچو کې وليکي.

اووم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (الف) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

څوک به ووايي چې موږ د چا بنده ګان يو؟

# الله جل جلاله

# الله جل جلاله يو دی.

# الله جل جلاله شريک نه لري.



## فعالیتونه



انار



ناک



بابا

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (الف) غږ ادا او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

ـزده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د (الف) توری د (انار، ناک، بابا) په کلموکې وښيي او بيا دې په خپلو کتابچوکې وليکي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې د (الف) توری د تختې پر مخ څو وارې مشق او تمرين کړي.

ـ زده کوونکي دې د (يو ـ دی) کلمې د تختې پر مخ څو وارې مشق او تمرين کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (الف) توری څو وارې په خپلو کتابچوکې وليکي.

اتم لوست:

# آ

موخه: زده کوونکي به د (آ) غږ سم اداکړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ څوک به ووايي چې په پورتني عکس کې څه ويني؟

ـ له تاسو څخه چا آس ليدلی، هغه مو خوښېږي؟

## آس

## دا آس دی.

## بابا آس لري.



## فعالیتونه



آسمان



آس



آلو

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (آ) غږ په یوازې توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ څو زده کوونکي دې د آسمان، آلو او آس کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او (آ) توري دې په کې وښيي.
ـ زده کوونکي دې د (الف او آ) تورو توپیر وښيي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې د (دا ـ بابا ـ آس) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.
ـ زده کوونکي دې (آ ـ س ← آس)، (با ـ با ←بابا) په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي د آسمان، آس او آلو کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

نهم لوست:

# ب

موخه: زده کوونکي به د (ب) غږ اداکړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ؟

## بابا

## دا بابا دی.

## بابا باغ لري.



## فعالیتونه



بیل



بابا



کتاب

ــ زده کوونکي دې په وار سره د (ب) غږ ادا کړي.
ــ زده کوونکي دې په وار سره یوه یوه جمله د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ــ زده کوونکي دې (بیل، بابا، کتاب) کلمې په وار سره ولولي او د تختې پر مخ دې ولیکي او بیا دې د (ب) توری په کې وښیي.

## مشق او تمرین

ــ زده کوونکي دې د (باغ، بابا، کتاب) کلمې د تختې پر مخ ولیکي.
ــ زده کوونکي دې د لاندې کلمو توري سره یو ځای او بیا دې په خپلو کتابچو کې ځو واري تمرین کړي.

با ــ با ← بابا
با ــ غ ← .....
لر ــ ی ← .....



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې څو واري په خپلو کتابچو کې ولیکي.

لسم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (پ) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه شی وینئ؟

ـ تاسو په پله باندې د تېرېدلو په وخت کې څه شي ته پاملرنه کوئ؟

# پُل

# دا پُل دی.

# سیند پُل لري.



## فعالیتونه





پیاله		څپلۍ		توپ

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (پ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ ځو زده کوونکي دې د (پ) له توري سره نور توري یو ځای او بشپړې کلمې دې ترې جوړې کړي.




ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (توپ، پُل) کلمو توري جلا جلا پر تختې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې د (پیاله، څپلۍ، توپ) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او د (پیاله، څپلۍ او توپ) کلمې دې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

يوولسم لوست:

# ت

موخه: زده کوونکي به د (ت) غږ سم اداکړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسو کله توت خوړلي او هغه مو خوښېږي؟

ـ څوک به ووايي چې د ناپاکو توتانو خوړل روغتيا ته څه زيان رسوي؟

## توت

## دا توت دي.

## توت ونه لري.

## زه پاخه او پاک توت خورم.



## فعالیتونه



توت



کتاب



توپ

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ت) غږ په یوازې توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې له لاندې ورکړ شوو تورو څخه بشپړې کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.




## مشق او تمرین

ـ یو زده کوونکی دې د (توپ، کتاب، توت) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او بل زده کوونکی دې د (ت) توری په کلمو کې وښیي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (توپ، کتاب، توت) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او د (توت، ونه، پاخه او خورم) کلمې دې په خپلو کتابچو کې د کتاب له مخې څو وارې ولیکي.

دولسم لوست:

# ټ

**موخه**: زده کوونکي به د (ټ) غږ سم اداکړي، بڼه او نوم به یې وپېژني او سم به یې ولیکي.





**پوښتنې**

ـ څوک به ووایي چې په پورتني انځور کې څه شیانویني؟
ـ له تاسو څخه د چا ټال خوښېږي؟

## ټال

**زما ټال خوښ دی.**

**په ټال کې ورو ورو زانګو.**



## فعالیتونه





ټال موټر کټ

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ټ) غږ په یوازې توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره متن په مناسب آواز ولولي او یوه، یوه کلمه دې پر تختې ولیکي.
ـ څو زده کوونکي دې د (ت او ټ) د تورو توپیر وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (ټال، موټر، کټ) کلمې د کتاب له مخې په تختې ولیکي او د (ټ) له توري څخه دې کرښې وباسي.
ـ زده کوونکي دې دا لاندې توري سره یو ځای او کلمې دې ترې جوړې او د تختې پر مخ دې ولیکي.

ټا ـ ل ← ټال، ک ـ ټ ← ..............
مو ـ ټر ← ..............، زا ـ نګو ← ..............



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د کتاب له مخې (ټال، خوښ، ورو، ورو، زانګو، کټ او موټر) کلمې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

دیارلسم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ث) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟

# ثريا

## ثريا زده کوونکې ده.

## غياث د ثريا ورور دی.

## کوثر له ثريا سره درس لولي.

## فعالیتونه


ثریا


کوثر


غیاث

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ث) غږ ادا او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او یوه یوه کلمه دې پر تختې ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ثریا، کوثر، غیاث) کلمې پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې د (ث) توری په کې وښیي.

ـ زده کوونکي دې د (ثریا، کوثر، درس، ورور) کلمو توري جلا جلا ولولي، لکه: ثریا (ث ـ ر ـ ی ـ ا) او بیا دې د تختې پر مخ ولیکي.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې په خپله خوښه د متن یوه یوه جمله په خپلو کتابچو کې څو ځلې ولیکي.

خوارلسم لوست:

# ج

موخه: زده کوونکي به د (ج) غږ سم اداکړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ له تاسو څخه څوک جوار پېژني؟

ـ څوک به ووايي چې جوار خام که پاخه خوړل کېږي؟

## جوار

## اجمل جوار کري.

## جوار خواږه دي.

## مورِ جوار نه ماتوو.



## فعالیتونه







برج　　　　　اجمل　　　　　جال

ـ ځو زده کوونکي دې د (ج) غږ اداکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي بيا دې يوه يوه کلمه پر تختې وليکي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې د چوکاټ له مخې د (ج) توری د نورو تورو په سر کې راوړي، کلمې دې ترې جوړې کړي او بيا دې هغه کلمې ولولي.





ـ زده کوونکي دې د (جال، اجمل، برج) کلمې پر تختې وليکي او بيا دې د (ج) توری په کې وښيي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او د (اجمل، جوار، جال) کلمې دې په خپلو کتابچو کې څو وارې وليکي.

پنځلسم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (چ) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

ـ ستاسو د کور په شاوخوا کې کوم چمن شته؟

# چمن

# چمن شين دی.

# بابا چمن ته اوبه ورکوي.

# مور چمن پاک ساتو.



## فعالیتونه







مرچ مچی چینه

ـ ځو زده کوونکي دې د (چ) غږ په یوازې او ډله ییزه توګه سم ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د (ج او چ) د تورو توپیر په غږ او بڼه کې وښیي.

ـ زده کوونکي دې (چینه، مچی، مرچ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او د (چ) توری دې په کې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ ځو زده کوونکي دې د لاندې شکل له تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړي او بیا دې پر تختې ولیکي.




ـ زده کوونکي دې د (چمن، چینه، مچی، مرچ) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ځو واري ولیکي.

شپاړسم لوست:

# ځ

موخه: زده کوونکي به د (ځ) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسو په پورتني انځور کې څه وينئ؟

ـ تاسو ولاړې شئ چې د څاه اوبه څنګه پاکې ساتل کېږي؟

## څاه

**موږ په کور کې څاه لرو.**

**موږ د څاه سر پټ ساتو.**

**د سرپټې څاه اوبه، پاکې وي.**



## فعالیتونه



څوکۍ



لیمڅی



سرلوڅ

ـ زده کوونکي دې د (څ) غږ ادا او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د (ج، څ، چ) د تورو توپیر وښيي.

ـ زده کوونکي دې د (څوکۍ، لیمڅی او سرلوڅ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او د (څ) توری دې په نښه کړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړي او دا تمرین دې په نورو تورو کې د تختې پر مخ تکرار کړي.





ـ زده کوونکي دې په وار سره د (څوکۍ، څاه، څوك، لیمڅی) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي بیا دې د (څاه، پاکي، سر لوڅ، پټ، لیمڅي) کلمې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

اوولسم لوست:

# ځ

موخه: زده کوونکي به د (ځ) غږ سم ادا، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسې په پورتني عکس کې څه وينئ؟

ـ آيا تاسې کوم وخت د مرغانو ځاله ليدلې ده؟

## ځاله

## مرغان ځان ته ځالې جوړوي.

## په ځالو کې هګۍ اچوي.

## مورڼ د ځالو هګۍ نه ماتوو.



## فعالیتونه


ځوان


ښځه


ږمنځ

ـ څو زده کوونکي دې د (ځ) غږ په يوازې توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونيسي.
ـ څو زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه بشپړې کلمې جوړې او بيا دې ولولي.

ځ + ا + ل + ه،          هـ + ګ + ى،          ز + ه

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې له لاندېنيو تورو څخه بشپړې کلمې جوړې او پر تختې دې وليکي.




ـ زده کوونکي دې خپل ځانونه نورو ته وروپېژني. لکه: زما نوم مينه ده. هغه دې بيا په تختې وليکي

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (هګۍ، ښځه، ږمنځ، ځاله) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي بيا دې د (هګۍ، ښځه، ږمنځ، ځاله) کلمې په خپلو کتابچو کې څو وارې وليکي.

اتلسم لوست:

# ح

موخه: زده کوونکي به د (ح) غږ سم ادا کړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





پوښتني

ـ څوك ويلای شي چې په پورتني عکس کې څه وينئ؟

## حج

**د فتاح مور او پلار حج ته ځي.**

**د حليمې بابا حج کړی دی.**

**مور د حاجيانو درناوی کوو.**



## فعالیتونه



حلیمه



تحفه



فتاح

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ح) غږ ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې د متن کلمې په وار سره سمې تلفظ او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ څو زده کوونکي دې د (ح او ج) د تورو په توپیر خبرې وکړي.

## مشق او تمرین

ـ څو زده کوونکي دې په لاندې شکل کې له تورو څخه بشپړې کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.




ـ زده کوونکي دې د (حلیمه، تحفه او فتاح) کلمې ولولي او بیا دې د (ح) توری پکې وښیي.
ـ زده کوونکي دې د (حلیمه، تحفه، فتاح، حج) کلمې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د مشق او تمرین لومړی فعالیت په خپلو کتابچو کې ولیکي.

نولسم لوست:

# خ

موخه: زده کوونکي به د (خ) غږ سم اداکړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.







**پوښتنې**

ـ له تاسو څخه چا خرما خوړلې ده؟

ـ ويلای شئ تاسو کله د خرما ونه ليدلې ده؟

# خرما

## خرما خوږه ده.

## خرما ونې لري.

## د خرما خوړل ګټې لري.



## فعالیتونه



خټکی



تخته



مخ

ـ ځو زده کوونکي دې د (خ) غږ ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د متن کلمې سمې تلفظ او بیا دې د تختې پر مخ ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د (خ او ج) د تورو توپیر په غږ او بڼه کې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه بشپړې کلمې جوړې او بیا دې پر تختې ولیکي.




ـ زده کوونکي دې په وار سره د (خټکی، مخ، تخته، خرما) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او ښې دې تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د (خټکی، خوره، ګټه، خوړل، مخ، تخته) کلمې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

شلم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (د) غږ سم اداکړي، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتني**

ـ تاسې په پورتني عکس کې څه وينئ؟
ـ آيا تاسې کله په خپل سر دوا خوړلې ده؟

# درمل

## دا درملتون دی.

## ناروغ درملو ته اړتيا لري.

## ناروغ بايد پر خپل وخت درمل وخوري.



## فعالیتونه



درمل



بادام



رود

ـ یو زده کوونکي دې د (د) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ یو، یو زده کوونکی دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي. بیا دې یوه یوه کلمه د تختې پرمخ ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه بشپړې کلمې جوړې بیا دې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.





ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ناروغ، دود، درمل، بادام، رود) کلمې پر تختې ولیکي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن د کتاب له مخې ولولي. د (درمل، دوا، ناروغ، بادام، رود) کلمې دې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

یوویشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ډ) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ؟

ـ څوك ويلای شي چې موږ په کوم وخت کې ډاکټر ته اړتيا پيدا کوو؟

# ډاکټره

# ډيوه ډاکټره ده.

# ډاکټره ناروغې ته درمل ليکي.

# موږ په خپل سر درمل نه خورو.



## فعالیتونه







ډنډ　　　　راډیو　　　　ډینگ

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ډ) غږ په سمه توگه ادا کړي.

ـ یو، یو زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي یو دې د کتاب له مخې د (ډوډۍ، راډیو، ډنډ) کلمې د تختې پر مخ ولیکي او بل دې د (ډ) توری پکې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (د او ډ) د تورو توپیر په بڼه او غږ کې وښیي.

ـ زده کوونکي دې په لاندې شکل کې، توري سره ونښلوي او کلمې دې ترې جوړې کړي بیا دې پر تختې ولیکي.






## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دوه ويشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ذ) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ؟

# ذاکر

## ذاکر زده کوونکی دی.

## ذاکر په خپل وخت ښوونځي ته ځي.

## ذاکر خپل کتاب او کاغذونه هر ځای نه اچوي.



## فعالیتونه



ذاکر



آذان



کاغذ

ـ زده کوونکي دې د (ذ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې د (د، ذ) توري پر تختې ولیکي او توپیر دې په غږ او بڼه کې وښيي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي هره ډله دې د لاندېني شکل له تورو او نورو تورو
خخه بشپړې کلمې جوړې کړي.




ـ زده کوونکي دې د (کاغذ، ذره بین، ذاکر، آذان) کلمې د تختې پرمخ ولیکي بیا دې
څو وارې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې د (ذره بین، کاغذ، ذاکر، آذان، ذاکره)
کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او د (ذ) توری دې په نښه کړي.

درویشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ر) غږ په سمه توګه ادا کړي، بڼه او نوم به یې وپېژني او سم به یې ولیکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وینئ؟

# روژه

## روژه په هر مسلمان فرض ده.

## روژه په کال کې یوه میاشت وي.

## روژه روغتیا ته ګټې رسوي.



## فعالیتونه







رمه　　　　اره　　　　اور

ــ ښو زده کوونکي دې د (ر) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ــ زده کوونکي دې په وار سره د (رمه، اره، اور) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او ودې وایي چې د اور او نورو سوځوونکو شیانو څخه څرنګه ځانونه وساتي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

## مشق او تمرین

ــ زده کوونکي دې په ښو ډلو کې له لاندې تورو څخه چې په شکل کې ښودل شوي، بشپړې کلمې جوړې او بیا دې د تختې پرمخ ولیکي.




ــ یو، یو زده کوونکی دې په وارسره د (روژه، اور، اره، رمه) کلمې پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې هغه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې ښو وارې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ځلورويشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ړ) غږ په سمه توګه ادا، نوم او بڼه به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنه**

ـ څوک به ووايي چې له ړندو سره څه ډول مرسته کولای شو؟

# ړوند

# دا ړوند دی.

# ړوند انسان هم لوستل او ليکل کولای شي.

# موږ بايد له ړندو سره مرسته وکړو.



## فعالیتونه





ړوند    لړم    ګیدړ

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ړ) غږ ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن په مناسب آواز ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د (ړوند ـ لړم ـ ګیدړ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي. نور دې د هغو توري ووایي او د (ړ) توری دې پکې وښيي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (ر ـ ړ) د تورو توپیر په غږ او بڼه کې وښيي او پر تختې دې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او له لړم څخه د ځان ساتنې په هکله خبرې وکړي. ښوونکی دې ورسره مرسته او لارښوونه وکړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او د (ړ) توری دې پکې په نښه کړي.

پنځه ویشتم لوست:

# ز

موخه: زده کوونکي به د (ز) غږ سم ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او په سمه توګه به يې وليکي.






**پوښتنې**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ؟

ـ تاسو سره په درسونو کې څوک مرسته کوي؟

## زده کوونکې

## زرمينه زده کوونکې ده.

## د زرمينې خور زرغونه ښوونکې ده.

## زرغونه له خپلې خور سره په درسونو کې مرسته کوي.



## فعالیتونه







زر　　　　زلزله　　　　مېز

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ز) غږ ادا او نور دې ورته غوږ ونيسي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې د زلزلې په وخت کې د ځان د ژغورنې لپاره باید څه وکړو؟

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره له لاندېنيو تورو څخه کلمې جوړې او پر تختې دې وليکي.

ز ـ ر ← زر

ز ـ ل ـ م ـ ی ← ..........　　ز ـ ل ـ ز ـ ل ـ ه ← ..........

ز ـ ر ـ غ ـ و ـ ن ـ ه ← ..........　　م ـ ي ـ ز ← ..........

ـ يو زده کوونکی دې د (زرمینه، زلزله، مېز، زرغونه، زلمی، زده کوونکی) کلمې د کتاب له مخې د تختې پرمخ وليکي او نور دې د (ز) توری پکې وښيي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې څو (ز) لرونکې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي.

شپږویشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ژ) غږ په سمه توګه ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ په پورتني عکس کې څه وينئ؟
ـ تاسو د ژمي په سړو کې څه ډول جامې اغوندئ؟

# ژمی

## ژمی د کال څلورم فصل دی.

## په ژمي کې هوا سړه وي.

## موږ باید تاوده کالي واغوندو.



## فعالیتونه


ژمی


روژه


ژړا

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ژ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې وريسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ يو زده کوونکي دې د کتاب له مخې د (ژبه، ژمی، روژه) کلمې پر تختې وليکي او نور دې د (ژ) توری پکې وښيي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي او هر ډله دې له لاندې تورو څخه بشپړې کلمې جوړې بيا دې پر تختې وليکي.




ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ژبه، ژمی، ژړا، تاوده، سړه) کلمې په تورو ووېشي، لکه: (ژ ـ ب ـ ه) او د تختې پرمخ دې وليکي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ژمي د متن يوه جمله په خپلو کتابچو کې وليکي.

اووه ویشتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ږ) غږ په سمه توګه ادا کړي، بڼه او نوم به يې وپېژني او سم به يې وليکي.





**پوښتنې**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه شی وينئ؟
ـ تاسو د ژمي په سړو کې څه ډول جامې اغوندئ؟

# ږمنځ

# دا ږمنځ پاکه ده.

# وېښته ږمنځول ګټې لري.

# وږمه په خپلې ږمنځې وېښتان ږمنځوي.



## فعالیتونه



ږمنځ



وږی



غوږ

ـ ځو زده کوونکي دې د (ږ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د (وږي، غوږ، ږمنځ) په کلموکې د (ږ) توری وښيي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي هره ډله دې له دغو تورو څخه کلمې جوړې کړي،

لکه: و ـ ږ ـ م ـ ه ← وږمه

ګ ـ ټ ـ ه ← ................

و ـ ږ ـ ی ← ................

غ ـ و ـ ږ ← ................

ـ زده کوونکي دې د (ږمنځ، وږبنتان، وږمه، ږمنځول) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او په تورو دې وویشي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د (ږمنځ، وږمه، وږی، غوږ، وږبنتان) کلمې څو واري په خپلو کتابچو کې ولیکي.

اته ویشتم لوست:

# س

موخه: زده کوونکي به د (س) غږ په سمه توګه اداکړي، نوم او بڼه به یې وپېژني، سم به یې ولولي او ولیکي.





**پوښتنې**

ـ تاسې په پورتني عکس کې څه وینئ؟
ـ څوک ویلای شي چې تاسې له کوم ډول سبو سره مینه لرئ؟

## سابه

## سابه ښه خواړه دي.

## سابه روغتیا ته ګټه رسوي.

## موږ باید پاک او تازه سابه وخورو.



## فعالیتونه



سیلاب



رسۍ



آس

ـ زده کوونکي دې د (س) غږ په سمه توګه ادا او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د (سیلاب، رسۍ، آس) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او د (س) توري دې پکې وښیي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او په دې هکله دې خبرې وکړي چې د سیلاب یا تېز باران په وخت کې څنګه خپل ځانونه وساتي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (سیلاب، رسۍ، آس) کلمې په تورو وویشي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د (سابه، روغتیا، رسۍ، ګټه، آس) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او د (س) توری دې پکې په نښه کړي.

نهه ویشتم لوست:

# ش

موخه: زده کوونکي به د (ش) غږ اداکړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنې**

ــ څوک رمه پيايي؟

ــ له تاسو څخه څوک ويلای شي چې د رمو ساتل څه ګټې لري؟

## شپون

## شاکر شپون دی.

## شپون خپله رمه ښه ساتي.

## د رمو ساتل ګټې لري.



## فعالیتونه



شمع



ماشين



داش

ـ زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او د (ش) غږ دې پکې سم ادا کړي.

ـ یو زده کوونکي دې د (شمع، ماشين او داش) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او نور دې د (ش) توری پکې وښيي.

## مشق او تمرین

ـ هر زده کوونکی دې په وار سره داسې یوه کلمه ووايي چې (ش) توری پکې راغلی وي.

ـ زده کوونکي دې په لاندې شکل کې د تورو په نښلولو سره کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.




ـ زده کوونکي دې د (شپون، شاکر، شین، ساتل) کلمې په تورو واړوي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې دویم فعالیت په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دېرشم لوست:

# ښ

موخه: زده کوونکي به د (ښ) غږ اداکړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ څوک ويلای شي چې په پورتني عکس کې څه وينئ؟

# ښار

## د کابل ښار ښکلی دی.

## د کابل ښار پر موږ ډېر ګران دی.

## موږ خپل ښار پاک ساتو.



## فعالیتونه



ښارو




نښان



اوښ

ـ زده کوونکي دې د (ښ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونيسي.
ـ زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او د متن يوه يوه کلمه دې پر تختې وليکي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي، هره ډله دې لاندېنۍ کلمې پر تختې وليکي او بيا دې په تورو ووېشي، لکه:

ـ ښار:　　　　ـ ښارو:　　　　ـ نښان:

ـ زده کوونکي دې د (ش او ښ) د تورو په توپير ځانونه وپوهوي او په کلمو کې دې وښيي.

ـ زده کوونکي دې دا لاندې توري سره ونښلوي او جوړې شوې کلمې دې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړي.






## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې دوه وارې وليکي.

یو دیرشم لوست:

# ص

موخه: زده کوونکي به د (ص) غږ په سمه توگه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنې**

ـ په پورتني عکس کې څه شی وينئ؟

ـ څوك ويلای شي چې د صابون کارول څه گټې لري؟

## صابون

## ناصر صابون راووړ.

## بصيره په صابون لاسونه مينځي.

## په صابون د لاسونو مينځل گټې لري.



## فعالیتونه


صابون


ناصر


اخلاص

ـ زده کوونکي دې د (ص) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د (ناصر، بصیره، صابون) په کلمو کې د (ص) توری په نښه کړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره په دې اړه خبرې وکړي چې موږ څه وخت باید په صابون لاسونه ومينځو؟
ـ زده کوونکي دې د لاندېني شکل له تورو څخه کلمې جوړې بیا دې پر تختې ولیکي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | ر | ي | ص | |
| ه | ر | ي | ص | ب |
| | ا | ب | ا | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (صابون، ناصر، صندلۍ، خلاص، نصیر، ګټې) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دوه دېرشم لوست:

# ض

موخه: زده کوونکي به د (ض) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





### پوښتنې

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه وينئ؟
ـ تاسو کوم وخت له چا سره مرسته کړې ده؟

## ضعيف

## بابا ضعيف دی.

## ضعيف مرستې ته اړ وي.

## له ضعيف سره مرسته ښه کار دی.



## فعالیتونه



ضیاء



قضاوت



حوض

ـ زده کوونکي دې د (ض) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د متن جملې په وار سره ولولي او نور دې وریې تکرار کړي.

ـ یو تن زده کوونکی دې د (ص او ض) توري پر تختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په وارسره د هغو د توپیر په اړه خبرې وکړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې او هغه دې په تخته مشق او تمرین کړي، لکه: (ض ـ ی ـ ا) ← ضیا

(م ـ ر ـ س ـ ت ـ ه) ←...............

(ق ـ ض ـ ا ـ و ـ ت) ←...............

(ض ـ ع ـ ي ـ ف) ←...............

(ح ـ و ـ ض) ←...............

(ر ـ ا ـ ض ـ ی ـ ه) ←...............

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې خپل نومونه ووایي او پر تختې دې ولیکي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د تمرین لومړنی فعالیت په خپلو کتابچو کې ولیکي.

درې دېرشم لوست:

# ط

موخه: زده کوونکي به د (ط) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسې کله طوطي ليدلی دی؟

# طوطي

## طاهر طوطي لري.

## طوطي ښکلی مرغه دی.

## لطيفه د طاهر خور ده.



## فعالیتونه





طوطي سطل خیاط

ـ زده کوونکي دې د (ط) غږ په سمه توگه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.

ـ یو زده کوونکي دې د (سطل، خیاط، طاهره، طوطي) کلمې یوه یوه د تختې پرمخ ولیکي او نور زده کوونکي دې هغه په څپو وویشي، لکه: س ـ طل

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د ځینو مرغانو نومونه ووایي.

ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه کلمې جوړې بیا دې پر تختې ولیکي.






## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د دریم فعالیت کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

خلور دېرشم لوست:

# ظ

موخه: زده کوونکي به د (ظ) غږ سم ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په پورتني عکس کې څه شی وينئ؟

## ظاهره

## ظاهره د حفيظ خور ده.

## حفيظ او ظاهره ښوونځي ته ځي.

## دوی په کور کې هم کار کوي.



## فعالیتونه



ظاهره



حفیظه



حافظ

ـ زده کوونکي دې د (ظ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې د متن جملې ولولي نور زده کوونکي دې په مناسب غږ ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې (ظاهره، حافظ، حفیظه) کلمې پر تختې ولیکي او هغه دې په څپو وویشي، لکه: ظا /هـ /ره

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (ط او ظ) د تورو څو کلمې د تختې پرمخ ولیکي او د هغو توپیر دې په غږ او شکل کې وښیي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې (ظاهره، حافظ، حفیظه) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځه دېرشم لوست:

# ع

موخه: زده کوونکي به د (ع) غږ سم اداکړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

- څوك ويلای شي چې موږ ولې کتاب لولو؟

## علم

## علم پوهې ته وايي.

## علم د ژوند رڼا ده.

## بې علمه ژوندگران دی.



## فعالیتونه





شمع　　　　ساعت　　　　عینکي

ـ زده کوونکي دې د (ع) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې په مناسب غږ وریسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د (عینکې، ساعت او شمع) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او پاتې کسان دې د تختې د مخ کلمې ولولي او د (ع) توری دې پکې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (عینکې، ساعت او شمع) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او په ښپو دې وویشي، لکه: پو / هه
ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه کلمې جوړې بیا دې د تختې پر مخ مشق او تمرین کړي.






## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې لومړی ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

شپږ دېرشم لوست:

# غ

موخه: زده کوونکي به د (غ) غږ سم ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتني**

ـ آيا تاسو خپل غاښونه مينځئ؟

ـ څوك ويلای شي چې د غاښونو پاك ساتل څه ګټې لري؟

## غاښ

**هره ورځ د غاښونو مينځل ګټې لري.**

**زرغونه خپل غاښونه په برس يا مسواک مينځي.**

**موږ په غاښونو کلک شيان نه ماتوو.**



## فعالیتونه



غر



کارغه



باغ

ـ زده کوونکي دې د (غ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې د (غر، کارغه، باغ، زرغونه، غاښ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او د (غ) توری دې پکې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د تختې پرمخ د چوکاټ له مخې د (غ) له توري سره نور توري ونښلوي او کلمې دې ترې جوړې کړي.

| غاښ | ښ | ا | |
|---|---|---|---|
| ه | م | ر | غ |
| | | ر | |

ـ زده کوونکي دې د (غر، غاښونه، کارغه، مسواک، برس، زرغونه، باغ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او بیا دې په څپو ووېشي، لکه: زر / غو / نه



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مشق لومړۍ فعالیت د کورنۍ دندې په توګه ولیکي.

اوه دېرشم لوست:

# ف

موخه: زده کوونکي به د (ف) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به یې وپېژني او بڼه به یې سمه ولیکي.





**پوښتنې**

ــ تاسې کومې لوبې پېژنئ؟

ــ تاسو له کومې لوبې سره زیاته مینه لرئ؟

## فوټبال

## فوټبال ښه لوبه ده.

## فرهاد له رفیع سره فوټبال کوي.

## فوټبال روغتیا ته ګټې لري.



## فعالیتونه



فیل



عارفه



نداف

ـ زده کوونکي دې د متن یوه یوه جمله ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (فیل، عارفه، فوټبال، نداف) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او د (ف) توری دې په نښه کړي.

ـ زده کوونکي دې د ځینو نورو لوبو نومونه واخلي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې دا لاندې چوکاټ بشپړ کړي.

| | ف | | هـ | ا | د | فرهاد |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | ع | ا | ر | | ه | |
| | ف | | ل | | | |
| ف | | ټ | | ا | ل | |
| | ن | د | ا | | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ځینو لوبو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

اته دېرشم لوست:

# ق

موخه: زده کوونکي به د (ق) غږ په سمه توګه اداکړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو په څه شي ليکل کوئ؟

## قلم

## په قلم ليکل کېږي.

## د اقبال خط ښکلی دی.

## سبق په ويلو او ليکلو زده کېږي.



## فعالیتونه



قلم



اقبال



سبق

ـ زده کوونکي دې د (ق) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې یوه یوه کلمه پرتختې ولیکي او پاتې کسان دې کلمې په هیجاوو ووېشي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې بیا دې په تختې ولیکي او پاتې کسان دې هغه په تورو ووېشي.

(ق ـ ل ـ م) ← قلم　　　(ښ ـ ک ـ ل ـ ی) ← ...............

(س ـ ب ـ ق) ← ...............　　　(ل ـ ي ـ ک ـ ل) ← ...............

(خ ـ ط) ← ...............　　　(ا ـ ق ـ ب ـ ا ـ ل) ← ...............

ـ زده کوونکي دې د (قلم، اقبال، سبق، لیکل، لوستل) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او ودې وایي چې هره کلمه له څو تورو څخه جوړه شوې ده؟



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

نهه دېرشم لوست:

# ک

موخه: زده کوونکي به د (ک) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به یې وپېژني او بڼه به یې سمه ولیکي.





**پوښتنه**

ـ تاسې په پورتني عکس کې څه وینئ؟

## کور

## هغه د کریم کور دی.

## کریم او شاګره خپل کور پاک ساتي.

## دوی دواړه په کور کې کار کوي.



## فعالیتونه


کدو


شکر


ناک

ـ زده کوونکي دې د (ک) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره دا لاندې توري پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې له هغو څخه کلمې جوړې کړي.

(ک ـ د ـ و) ← کدو

(ک ـ ت ـ ا ـ ب) ←........... (ک ـ ر ـ ی ـ م) ←...........

(ش ـ ک ـ ر) ←........... (ک ـ ر ـ ي ـ م ـ ه) ←...........

(ن ـ ا ـ ک) ←........... (ش ـ ا ـ ک ـ ر ـ ه) ←...........

ـ یو یو زده کوونکی دې ووایي چې د (زده کوونکي، کور، کریم، شاکره، کار، پاک) کلمې څو توري لري او د (ک) توری د کلمې په کومې برخې کې راغلی دی؟



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې له ځان سره ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

خلوېښتم لوست:

# گ

موخه: زده کوونکي به د (گ) غږ په سمه توگه ادا، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتني**

ـ ستاسو په کور کې گلان شته؟

ـ ستاسو کوم رنگ گلان خوښېږي؟

## گل

**گل ښکلی رنگ او ښه بوی لري.**

**گلالۍ او ننگيال گلانو ته اوبه ورکوي.**

**موږ گلان نه شکوو.**



## فعالیتونه



ګل



هګۍ



چرګ

ـ زده کوونکي دې د (ګ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې د (ك او ګ) تورو توپیر په غږ او بڼه کې وښيي.

## مشق او تمرین

ـ څو زده کوونکي دې د (ګلالۍ، هګۍ او چرګ) کلمې د کتاب له مخې په تختې ولیکي او د (ګ) توری دې پکې وښيي.

ـ زده کوونکي دې د چوکاټ خالي ځایونه په تورو سره ډك او کلمې دې ترې جوړې کړي بیا دې پر تختې تمرین کړي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | چ | | ګ | ← چرګ |
| | ګ | ل | | ل | ی | ← ............ |
| | | ګ | ی | ا | ل | ← ............ |
| | ګ | ل | ا | | | ← ............ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې له ځان سره ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

یو څلوېښتم لوست:

# ل

موخه: زده کوونکي به د (ل) غږ په سمه توګه ادا کړي، په نوم به يې پوه او بڼه به يې سمه ولیکي.





**پوښتنې**

ـ څوک ويلای شي چې په پورتني عکس کې څه وينې؟
ـ څوک ويلای شي په هغو ورځو کې چې لمر نه وي، هوا څنګه وي؟

## لمر

## لمر مېوې او دانې پخوي.

## لمر زموږ هډوکو ته قوت ورکوي.

## تېز لمر ته ګرځېدل انسان ناروغه کوي.



## فعالیتونه



لور



ملالۍ



ځنګل

ـ ښو زده کوونکي دې د (ل) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونيسي.
ـ ښو زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې يوه يوه کلمه د کتاب له مخې پرتختې وليکي.

## مشق او تمرين

ـ ښو زده کوونکي دې د (لمر، ځنګل، ګټې، انسان، لور، ملالۍ، ګل) کلمې د ښوونکي په مرسته د تختې په مخ وليکي او نور دې په وار سره دغه کلمې په تورو او څپو وويشي.
ـ ښو زده کوونکي دې له متن څخه (ل) لرونکې کلمې پيدا او په خپلو کتابچو کې دې مشق او تمرين کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې له ځان سره ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

دوه څلویښتم لوست:

# م

موخه: زده کوونکي به د (م) غږ په سمه توګه ادا کړي، په نوم به يې پوه او بڼه به يې سمه ولیکي.





**پوښتنه**

ـ په تاسو باندې څوک ډېر ګران دي؟

## مور

## مور په ما ډېره ګرانه ده.

## زه د خپلې مور او پلار خبرې منم.

## مور د مور درناوی کوو.



## فعالیتونه



مالټه



لیمو



معلم

ـ زده کوونکي دې د (م) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د لاندېني چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې او په تختې دې ولیکي او بیا دې زده کوونکي په وار سره هغه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړي.

| ا | ل | ت | ه | مالټه |
|---|---|---|---|---|
| و | ږ | | | |
| و | ر | | | |
| ع | ل | م | | |

(م) ← ا، و، و، ع

ـ زده کوونکي دې له متن څخه د (م) لرونکي کلمې پیدا او پر تختې دې ولیکي وروسته دې د (م) توری په نورو کلمو کې مشق او تمرین کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (مالټه، مور، پلار، درناوی، ګرانه، خبرې، معلم، لیمو) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او د (م) توری دې پکې وښیي.

درې څلوېښتم لوست:

# ن

موخه: زده کوونکي به د (ن) غږ سم اداکړي، په نوم به یې پوه او بڼه به یې سمه ولیکي.





**پوښتنه**

ـ له تاسو څخه چا د نارنج ونې لیدلې دي؟

## نارنج

## نارنج ژېړ رنګ لري.

## د نارنج ونې په ننګرهار کې ډېرې دي.

## نارنج روغتیا ته ګټې لري.



## فعالیتونه



ناک



ونه



میچن

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ن) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور زده کوونکي دې یوه یوه کلمه پر تختې ولیکي او (ن) دې پکې وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د (نارنج، ژیړ، ګل، رنګ، ناک، ونه، مېچن) کلمې پر تختې ولیکي او دغه کلمې دې په تورو وویشي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د لاندني چوکاټ توري دې سره ونښلوي او کلمې دې ترې جوړې کړي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ژیړ ← | 📖 | 📖 | 📖 | ړ | ي | ژ | 📖 |
| ............ ← | 📖 | ا | ي | ت | غ | و | ر |
| ............ ← | 📖 | 📖 | 📖 | 📖 | ک | ا | ن |
| ............ ← | 📖 | 📖 | 📖 | 📖 | ه | ټ | ګ |
| ............ ← | ر | ا | هـ | ر | ګ | ن | ن |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (نارنج، ناک، ژیړ، ونې، ګټې، ونه) کلمې په خپلو کتابچو کې څو واري ولیکي.

څلور څلوېښتم لوست:



موخه: زده کوونکي به د (ڼ) غږ سم ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





پوښتني

ـ څوک ويلای شي چې په پورتني عکس کې څهويني؟
ـ آيا له تاسو څخه چا د مڼو ونه ليدلې ده؟



**دا د مڼو بڼ دی.**

**د مڼو د ونو پاڼې ښکلې دي.**

**په بڼ کې هر ډول ونې وي.**

**موږ د ونو ښاخونه نه ماتوو.**



## فعالیتونه



منه



پاڼه



بڼ

ـ زدکوونکي دې په وارسره د (ڼ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وارسره د متن جملې ولولي او نور زده کوونکي دې د متن یوه یوه کلمه پرتختې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ن او ڼ) تورو توپیر په غږ او بڼه کې وښيي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د (منه، پاڼه، بڼ، ښاخونه، ښکلې، نه ماتوو) کلمې دې د ښوونکي په مرسته پر تختې ولیکي او هر زده کوونکی دې هغه په تورو ووېشي.
ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه کلمې جوړې بیا دې پر تختې ولیکي.

| م | ڼ | ه | 📖 | ← منه |
|---|---|---|---|---|
| م | ڼ | ي | 📖 | ← ............ |
| پ | ا | ڼ | ه | ← ............ |
| ښ | ک | ل | ی | ← ............ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځه څلوېښتم لوست:

# و

موخه: زده کوونکي به د (و) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسو واوره ليدلې ده، هغه مو خوښېږي؟

## واوره

## واوره سپين رنګ لري.

## له واورې سره هوا سړېږي.

## واورې او اوبه ځمکې ښېرازوي.



## فعالیتونه



وړي



غوا



پیشو

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (و) غږ په سمه توگه ادا او نور دې ورپسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وارسره د متن جملې ولولي او نور دې د متن یوه‌یوه کلمه پر تختې ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (واوره، وړی، غوا، پیشو، رنگ، هوا، گټه، څمکو) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او بیا دې هغه په تورو وویشي.

ـ زده کوونکي دې د لاندېنې چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي، بیا دې ولولي.

|  |  |  |  |  |
|---|---|---|---|---|
|  |  | ي | ړ |  |
| ه | ر | و | ا | و |
| ي | ر | و | ا |  |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن په جملو کې (و) لرونکې کلمې پیدا او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

شپږ څلوېښتم لوست:

# هـ ـ ه ـ ـه

موخه: زده کوونکي به د (ه) غږ سم ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼې به يې سمې وليکي.





**پوښتنه**

ـ څوك ويلای شي چې هوا په کوم فصل کې ښه وي؟

## هوا

## په پسرلي کې هوا پاکه او تازه وي.

## پاکه او تازه هوا روغتيا ته ګټې لري.

## زه په تازه هوا کې درس وايم.



## فعالیتونه



هوږه



سهار



اره

ـ زده کوونکي دې د (هـ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې وریسې په مناسب غږ تکرار کړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د کتاب له مخې دې (هـ) لرونکې کلمې د تختې پرمخ ولیکي او نور دې ولولي.

ـ زده کوونکي دې د (هوږه، چاپېریال، ګټه، پاکه، تازه، هوا، اره) کلمې پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې هغه په تورو واړوي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

اووه څلوېښتم لوست:

# ی

موخه: زده کوونکي به د ساده (ی) غږ سم اداکړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ څوك ويلای شي چې په کوم فصل کې د ونو پاڼې رژېږي؟

# منی

## منی د کال درېیم فصل دی.

## په مني کې هوا ورو ورو سړېږي.

## په سړې هوا کې بايد تودې جامې واغوندو.



## فعالیتونه



منگۍ



ټولگۍ



خټکۍ

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ساده (ی) غږ په سمه توگه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او یوه یوه کلمه دې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وارسره د ښوونکي په مرسته د چوکاټ له تورو بشپړې کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| و | س | م | ← موسم |
| ن | ی | 📖 | ← ............ |
| ن | گ | ی | ← ............ |
| و | ړ | 📖 | ← ............ |

م

ـ زده کوونکي دې په وار سره د (منگۍ، ټولگۍ، خټکۍ، منۍ، جامې، سړې، تودې، اغوندو) کلمې پر تختې ولیکي او هغه دې په توره واړوي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

اته څلوېښتم لوست:

# ې

موخه: زده کوونکي به د اوږدې (ې) غږ سم ادا کړي، نوم به یې وپېژني او بڼه به یې سمه ولیکي.





**پوښتنه**

ــ څوک ویلای شي چې په وچو او تازه مېوو کې مو کومې مېوې خوښېږي؟

## مېوې

## زموږ هېواد ډېرې مېوې لري.

## موږ باید پاکې مېوې وخورو.

## د پاکو مېوو خوړل روغتیا ته ګټې لري.



## فعالیتونه





یوې　　　　هېواد　　　　پنې

ـ زده کوونکي دې په وارسره د اوږدې (ې) غږ په سمه توګه ادا او نور زده کوونکې دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وارسره د متن جملې ولولي او یوه یوه کلمه دې د کتاب له مخې پرتختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په وارسره د (ساده ی او اوږدې ې) ترمنځ توپیرونه وښیي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته دا کلمې (مېوې، هېواد، منې، روغتیا، ګټه، پاکې، خوړل) پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې په وار سره ووایي چې هره کلمه له څو تورو جوړه شوې ده؟

ـ زده کوونکي دې له ښي خوا څخه د لاندېنیو تورو په نښلولو سره بشپړې کلمې جوړې بیا دې پرتختې ولیکي.

| 📖 | م | ن |
|---|---|---|
| م | ې | و |
| 📖 | ی | و |
| ډ | ې | ر |

ې



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې څو وارې ولیکي.

نهه څلوېښتم لوست:

# ي

موخه: زده کوونکي به د څرګنده (ي) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بيا به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ــ څوک ويلای شي چې په پورتني انځور کې څه شیويني؟

## منګي

## کلال منګي جوړوي.

## مور منګي پاک او سر يې پټ ساتو.

## د منګي اوبه پاکې او يخې وي.



## فعالیتونه


بیاتي


سیند


یوم

ـ زده کوونکي دې په وارسره د متن جملې ولولي او نور دې وریسې تکرار کړي.
ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې د کتاب له مخې ولولي او نور زده کوونکي دې د هرې یوې کلمې توري ووایي.
ـ زده کوونکي دې د (سرېي، سیند، بیاتي، منگي، پاکې، یخې، پټې) کلمې پر تختې ولیکي او د (ي) له توري دې دایره وکاږي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکوچې له تېرو درسونو څخه، کومې کلمې زده کړې وي ،په خپلو کتابچو دې ولیکي.
ـ زده کوونکي دې د لاندېني چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې بیا دې پر تختې ولیکي.

| ک | ي | ل | و |
|---|---|---|---|
| ت | ا | ي | ب |
| گ | ن | م | 📖 |
| ړ | س | 📖 | 📖 |

ي



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلی خط ولیکي.

پنځوسم لوست:

# ۍ

موخه: زده کوونکي به د زورکۍ واله (ۍ) غږ سم ادا، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه وليکي.





**پوښتنه**

ـ تاسې د کومو مرغانو هگۍ ليدلې دي؟

## هگۍ

## مرغان هگۍ اچوي.

## موږ د چرگانو تازه هگۍ خورو.

## د چرگانو هگۍ او غوښې ښه خواړه دي.



## فعالیتونه



ډوډۍ



هوسۍ



څپلۍ

ـ زده کوونکي دې د زورکۍ واله (ۍ) غږ په سمه توګه ادا او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او د ښوونکي په مرسته دې د (هوسۍ، هګۍ، ګلالۍ، هیلۍ، ډوډۍ، څپلۍ) کلمې پر تختې ولیکي او نور زده کوونکي دې په تورو واړوي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د څو مرغانو نومونه دې ووایي او د ښوونکي په مرسته دې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه بشپړې کلمې جوړې کړي.

| هـ | ګ | ۍ | 📖 | ← | منه |
|---|---|---|---|---|---|
| څ | پ | ل | ۍ | ← | ............ |
| ډ | و | ډ | ۍ | ← | ............ |
| هـ | و | س | ۍ | ← | ............ |
| هـ | ي | ل | ۍ | ← | ............ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن جملې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

یو پنځوسم لوست:

# ئ

موخه: زده کوونکي به د زورکي واله (ئ) غږ په سمه توګه ادا کړي، نوم به يې وپېژني او بڼه به يې سمه ولیکي.





**پوښتنه**

ـ تاسې دا (ئ) پېژنئ او کله مو لیدلې ده؟

## ولولئ

**ټولګي ته په خپل وخت راشئ.**

**تاسې خپل درس ښه ولولئ!**

**کورنۍ دنده په سمه توګه ولیکئ!**



## فعالیتونه



کتاب ولولئ



خط ولیکئ



پاکه مېوه وخورئ

ـ ښوونکي دې د زورکې واله (ئ) نوم په سمه توګه ووايي او نور زده کوونکي دې وروسته تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن جملې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې پنځو ډولو (ی) ګانو (ی، ې، ي، ی، ئ) ترمنځ توپیرونه د شکل له مخې وښيي او د ښوونکي په مرسته دې مثالونه ورته راوړي.

## مشق او تمرين

ـ زده کوونکي دې په وارسره دا کلمې (ولولئ، وخورئ، وګورئ، وليکئ، شئ، کړئ، وپيژنئ) کلمې په تختې وليکي او بيا دې په تورو واړوي او تمرين دې کړي.

ـ زده کوونکي دې له لاندېني چوکاټ څخه چې لومړی او اخر توری يې شريک دی، کلمې جوړې کړي.




| ک | ړ | |
|---|---|---|
| ګ | و | ر |
| ل | ي | ک |
| ل | و | ل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د تمرين دويم فعاليت په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې وليکي.

دوه پنځوسم لوست:

# زموږ هېواد

موخه: زده کوونکي به متن سم ولوستلای او ولیکلای شي او خپل هېواد به وپېژني.





**پوښتنې**

ـ څوک ویلای شي چې زموږ د هېواد نوم څه دی؟

ـ څوک ویلای شي چې زموږ د هېواد پایتخت څه نومېږي؟

## افغانستان زموږ هېواد دی.

## د افغانستان پایتخت کابل دی.

## موږ درس وایو چې خپل هېواد ودان کړو.

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي د هېواد او پایتخت نوم دې واخلي او نور زده کوونکي دې پر تختې ولیکي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وارسره په لاندېني شکل کې د (الف) د توري په نښلولو سره کلمې جوړې کړي:




## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# بيرغ

موخه: زموږ زده کوونکي به متن سم ولوستلای، ولیکلای او د خپل هېواد د بيرغ په ارزښت به پوه شي.





**پوښتنې**

ـ تاسو د خپل هېواد بيرغ ليدلی دی؟

ـ څوک ويلای شي چې زموږ بيرغ کوم رنګونه لري؟

**زموږ ملي بيرغ د خپلواکۍ نښه ده.**

**زموږ بيرغ تور، سور او شين رنګ لري.**

**موږ د خپل ملي بيرغ درناوی کوو.**



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن د کتاب له مخې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د بیرغ د رنګونو نومونه واخلي او خبرې دې پرې وکړي.

## مشق او تمرین

ـ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د کتاب له مخې دې یوه یوه جمله پر تختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته په لاندېني شکل کې (زموږ) کلمه له نورو کلمو سره یو ځای کړي.






## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خپل هېواد بیرغ رسم او د رنګونو نومونه دې ولیکي.

څلور پنځوسم لوست:

# د انسان درناوی

موخه: زده کوونکي به متن سم ولوستلای، ولیکلای شي او د انسان د درناوي په مفهوم به وپوهېږي.





**پوښتنې**

ـ تاسو ته څوک د قدر او درناوي وړ دي؟

**ټول انسانان د درناوي وړ دي.**

**مور، د مور، پلار، ښوونکي او ټولو انسانانو درناوی کوو.**

**د انسانانو په درناوي الله جل جلاله رضا کیږي.**

## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې په وار سره متن (د انسانانو درناوی) ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله د ټولګي په مخ کې ولولي او یوه یوه کلمه دې پرتختې ولیکي او په څپو دې وویشي.

ـ زده کوونکي دې د (انسانان، ښوونکی، درناوی، رضا، ټول، وړ) کلمې د کتاب له مخې پر تختې ولیکي او په څپو دې وویشي.

## مشق او تمرین

۱- زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۲- زده کوونکي دې له لاندینیو توررو څخه کلمې جوړې او پر تختې دې ولیکي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ټ ـ و ـ ل | ټول | ک ـ و ـ ر | .......... |
| م ـ و ـ ر | .......... | پ ـ ل ـ ا ـ ر | .......... |
| م ـ و ـ ږ | .......... | د ـ ر ـ ن ـ ا ـ و ـ ی | .......... |
| و ـ ړ | .......... | ا ـ ن ـ س ـ ا ـ ن | .......... |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا    وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم    زموږ رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زموږ رهنما

وطن زما یې ځان    له تانه شم قربان
ته وینه د افغان    ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زموږ رهنما

اباد اوسې اباد    وطنه ته شې ښاد
مونږ سربښندو په تا    او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زموږ رهنما

ته کور یې هم مې گور    ته پلار یې هم مې مور
ته زړه یې د اسیا    زما د سترگو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زموږ رهنما

ته ننګ یې د اریا    او تاج یې د یما
ځارېږمه له تا    افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زموږ رهنما

محمد مُعین مرستیال